


د تعلیم الاسلام راډیو ویب پاڼې له خوا:

www.taleemulislam-radio.com

د کتاب پیژندنه

----------------

د کتاب نوم: **اختلاف رحمت دی، ډله بازي حرامه ده**

مؤلف: مولانا مفتي محمد رفیع عثماني مد ظله

ژباړه: قاري محمد نسیم نسیم

د چاپ کال: قمري، ۱۴۳۴، ربیع الاول

اړیکي: ۰۷۰۰۳۲۱۴۷۹ او ۰۷۰۰۳۵۹۵۴۲

چاپ چاري: احمد شاهي کتاب خانه (کابل بازار کندهار)

## د ناشر وړاندیز

مولانا مفتي محمد رفیع عثماني صاحب د دارالعلوم کراچي صدر تېر کال د عمرې د پاره سعودي عربستان ته تشریف وړی و. د دغه سفر په دوران کي چي د ۱۴۲۵ د جماد الاولی ۱۳ چي د ۲۰۰۴ کال د جولای د اولي سره سمون خوري، په جده کي د بهجت ایوب زنجاني صاحب په کور کي د پوهانو یوه منتخبه اجتماع وه. چي په دې غونډه کي مولانا صاحب په خپل نوبت سره ډېر ګټور او عظیم خطاب د قران کریم او احادیثو په رڼا کي و محمدي امت ته وکړی. د عوامو د ګټې په خاطر "ادارۃ المعارف کراچي ۱۴" ته دا بیان د یوه کتاب په شکل کي ټولني ته د وړاندي کولو سعادت حاصلیږي. الله تعالی دي یې په خپل دربار کي قبول وګرځوي او ویونکو ته دي د دې کتاب څخه د صحیح ګټې اخیستولو توفیق ورکړي. آمین

د دعا غوښتونکی
محمد مشتاق ستي
ادارۃ المعارف کراچي

ذوالحجه ۱۴۲۶ھ
مطابق جنوري ۲۰۰۶

## د سر خبري

**نحمده و نصلي على رسوله الكريم، اما بعد :**

فَاَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ. بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ:

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِۦ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسۡلِمُونَ ﴿١٠٢﴾ وَٱعۡتَصِمُواْ بِحَبۡلِ ٱللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُواْۚ وَٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ إِذۡ كُنتُمۡ أَعۡدَآءً فَأَلَّفَ بَيۡنَ قُلُوبِكُمۡ فَأَصۡبَحۡتُم بِنِعۡمَتِهِۦٓ إِخۡوَٰنًا وَكُنتُمۡ عَلَىٰ شَفَا حُفۡرَةٍ مِّنَ ٱلنَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنۡهَاۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمۡ ءَايَـٰتِهِۦ لَعَلَّكُمۡ تَهۡتَدُونَ ﴿١٠٣﴾

درنو او محترمو عزیزانو! زه تر هر څه د مخه د ګران ورور محترم بهجت صاحب شکر ګذاریم چي هغه ددې فرصت خیال ساتلی او ستاسو درنو ډېر ممنون یم چي خپل قیمتي وخت مو را ویستی او ما کمزوري ته مو دا نیکمرغي را وبخښل چي ستاسو درنو په حضور کي د خپل زړه څه وویلای سم. الله تعالی دي تاسو ته ددې محبت جزاء خیر درکړي. آمین

محترمو! د جمله معترضه په ډول به دا خبره وکړم چي تاسو حضرات به شاید تعجب کوی چي ما احرام تړلی دی او ددې تر څنګ مي خولۍ هم پر سر ده او موزې مي هم په پښو دي. اصلاً خبره دا ده چي ما تر اوسه پوري لا خپل احرام شروع کړی نه دی. تاسو درنو ته معلومه ده چي احرام ددې لباس څخه نه شروع کیږي بلکه څنګه چي تلبیه د نیت سره څوک ووایي د هغه وخت

څخه احرام شروع کیږي. خو کله چي د دې ځای څخه د روانېدو وخت سو نو ان شاءالله هغه وخت زه احرام شروع کوم.

## د خطبې د ایت ژباړه

محترم بهجت صاحب ما ته دا ویلي وه چي که څه هم دا غونډه به ډېره مختصره وي خو په دې کي به د مختلفو تنظیمونو او مسلکونو سره تعلق لرونکي احباب موجود وي نو یو داسي بیان باید وسي چي زموږ د ټولو لپاره ګټور وي. نو له همدې کبله ما د قران کریم هغه ایت انتخاب کړی چي ستاسو په مخ کي ما تلاوت کړی او د دې ایت ژباړه داسي ده:

"ای د ایمان خاوندانو! د الله څخه وبیرېږئ څومره چي د ده څخه د بېرېدلو حق دی او تاسو ته دي مرګ نه راځي مګر په داسي حالت کي چي تاسو مسلمانان یاست. او تاسو د الله رسۍ په ټینګه ونیسئ او په خپل منځ کي مه مختلف (بې اتفاقه) کیږئ. او د الله تعالی هغه نعمت در یاد کړئ چي تاسو یو د بل دښمنان واست بیا الله تعالی ستاسو په زړونو کي الفت پیدا کړی او تاسو د ده په فضل سره ورونه وګرځېدلاست..."

## د یهودي پلانونو سره د مقابلې طریقه

په " إِذْ كُنتُمْ أَعْدَآءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ... " کي د اوس او د خزرج د قبیلو د اختلافاتو طرف ته اشاره ده. دا دواړه د مدینې منورې د عربو مشهوري قبیلې وې، په کلونو کلونو یې ترمنځ د قتلونو او فسادونو لړۍ جاري وه. او یهودیان چي د مدینې په شا او خوا علاقه کي مقیم وه، هغو د غو د ښمنیو ته لمن وهله او د همدغو اختلافاتو او جګړو څخه دوی ته مالي ګټه رسېدل

ځکه چي د دې جګړو څخه د یهودو اسلحې خرڅېدلې چي په دې سره یهودو ډېره شتمني لاس ته راوړل او جنګېدونکو دواړو ډلو (اوس او خزرج) به د یهودو څخه قرض اخیستی چي پر دې باندي بیا هغو سود هم خوړی.
یهودیانو دې جنګو ته په لمن وهلو سره څه څه پلانونه او دسیسې جوړولې؟ هغه یو اوږد داستان دی او هغه داستان تقریباً همدغسي دی لکه څنګه چي نن سبا د مسلمانانو په خپل منځ کي په جنګولو سره تکراریږي. په دغه ایت کي د هغه دسیسو سره د مقابلې کولو یوه طریقه ښودل سوې ده. او هغه طریقه تقوا اختیارول او په خپل منځ کي په اتفاق او اتحاد سره اوسېدل دي. په داسي حال کي چي تر ټولو مخکي دا حکم راته سوی دی:

" يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ..." یعني ای د ایمان خاوندانو د الله څخه وبېرېږئ. د الله څخه د بېري مطلب دا دی چي خپل ځانونه د هر قسم ګناهونو څخه وساتئ. د کوچنیو ګناهونو څخه یې هم وساتئ او د لویو ګناهو څخه یې هم وساتئ، د ښکاره ګناهو څخه هم او د پټو ګناهونو څخه هم. د حقوق الله اړوند ګناهونو څخه هم او د حقوق العباد اړوند ګناهونو څخه هم، د ظاهري اعضاوو د ګناهونو څخه هم او په زړه کي د پټو ګناهونو څخه هم ځانونه وساتئ.

## د قران کريم يو خاص اسلوب

د قرانکريم يو خاص اسلوب دا دی چي کله يو حکم کوي او چي هغه په ظاهره د بنده ګانو لپاره څه مشکل وي نو د دغه مشکل د حلولو طريقه هم ور ښوي. دا چي په دې ايت کي يې د "تقوا" حکم کړی دی چي دا دومره آسانه کار نه دی بلکه د ژبي، غوږ، زړه، لاس او پښې د هر قسم ګناه څخه ساتل يو مشکل کار دی. خو د دې مشکل د اسانۍ لپاره يوه طريقه په سورت توبه کي په داسي ډول راځي:

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَكُونُوا۟ مَعَ ٱلصَّـٰدِقِينَ ﴿١١٩﴾

ژباړه: ای ايمان والاوو! وېرېږئ د الله څخه او د صادقينو سره واوسېږئ.

د "الصادقين" څخه مراد هغه خلک دي چي په ژبه هم رښتيني وي، په زړه کي هم رښتني وي، په عقيده کي هم رښتني وي او په عمل هم رښتني وي يعني د الله رښتني دوستان.

ګويا دا يې راته وښودل چي کله د الله د دوستانو سره اوسې نو تقوا لاس ته راوړل آسانه کيږي. او زموږ تجربه هم دا ده چي د الله والا خلګو سره په اوسېدولو د ګناهونو څخه ځان ساتنه آسانه کيږي. مثلاً که موږ د لسو پنځلسو ملګرو سره په يوه سفر روان سو، که هغه ټول ښه لمونځ ګذاره خلک وي، د ګناهو څخه خلاص خلک وي، متقي او پرهېزګاره خلک وي نو بيا د ګناهو د پاره هيڅ لاره نه پيدا کيږي بلکه ګناه کول مشکل وي. او که چيري موږ د فاسقانو او فاجرانو خلګو سره په سفر کي ووځو چي هغوی نه د

لمانځه پروا لري، نه د حلال او حرامو او نه د پاکۍ اوناپاکۍ پروا لري نو هلته خو بیا د او دس کول هم مشکل ، د لمانځه کول هم او د نورو ګناهو څخه ځان ساتل هم مشکل وي.

## قرانکریم د حق معیار دی

او دلته یې پر تقوا باندي د عمل کولو معیار راوښوی هغه دا چي: " وَٱعۡتَصِمُواْ بِحَبۡلِ ٱللَّهِ جَمِيعٗا وَلَا تَفَرَّقُواْ..." یعني "د الله ﷻ رسۍ" یعني قرانکریم ټینګ ونیسئ. یعني دا یې راوښول چي که ټوله په ګډه سره قرانکریم په مضبوطۍ سره ونیسی یعني ټوله په ګډه سره پر دې عمل وکړی نو تقوا لاس ته راځي ځکه چي پر قران عمل کول په اصل کي تقوا ده.

ددې څخه معلومه سوه چي قران د حق معیار دی (حقه لار اصلاً په قرانکریم معلومیږي). او بیا چي قران کوم شی د حق معیار ټاکلی وي هغه هم د حق معیار دی. هغه داسي چي قرانکریم رسول الله ﷺ د حق معیار بللی دی، اصحاب کرام رضي الله عنهم یې د حق معیار بللي دي او د الله رښتني دوستان (اولیاء) یې د حق معیار بللي دي.

ګویا اوله خبره دا سوه چي قران باید خپل رهبر او رهنما وګرځول سي او پر هغه عمل وکړل سي. مګر موږ د یوه معلم د لارښوونې څخه پرته په قران مجید په پوره ډول نه سو پوهېدلای ځکه چي د انسان معلم کتاب نه وي بلکه انسان وي. د دنیا هیڅ علم او فن یوازې د کتاب د مطالعې څخه نه سي لاس ته راتللای. الله رب العزت د هر کتاب او هري صیحفې سره یو نبي رالیږلی چي هغه یې ددې کتاب یا صیحفې معلم جوړېدی. قرانکریم د رسول الله

ﷺ په ذریعه راليږل سوی دی او خپله قران مجيد رسول الله صلی الله عليه وسلم د قران معلم ټاکلی دی. په سورت آل عمران کي د رسول الله ﷺ د پيغمبري د مقاصدو څخه دوه مقصده دا ښوودل سوی دي:

وَيُعَلِّمُهُمُ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ... (۱۶۴)

ژباړه: او (رسول الله ﷺ) مؤمنانو ته قران او حکمت يعني د پوهۍ خبري ورښووي.

د رسول الله ﷺ په منصبي فرايضو کي دا خبره شامل کړل سوې ده چي هغه د قران مجيد الفاظ هم امت ور وښوي او د قرانکريم معنی او مفهوم هم ور وښوي. دا مضمون په قران مجيد کي تر څلورو په زياتو ځايونو کي بيان سوی دی.

هيڅ کتاب د نبي څخه بغير نه دی راغلی البته داسي ضرور پيښه سوې ده چي نبي راغلی دی خو کتاب نه دی راغلی. نو معلومه سوه چي په کتاب الله د پوهېدو او په هغه د عمل کولو لپاره معلم لازمي دی. د قران کريم معلم هغه د کونينو تاجدار، سرور عالم ﷺ دی، او بيا د هغه شاګردان چي دده څخه يې دا کتاب زده کړی دی هغه صحابه رضي الله عنهم د قران معلمان دي، او بيا د هغو شاګردان او بيا د هغو شاګردان (ددې کتاب معلمان دي) تر داسي اندازې چي دا سلسله الحمد لله تر اوسه پوري په تواتر سره را روانه ده.

## که اختلاف په خپلو حدودو کي دننه وي نو ناوړه نه دی

په دې ایت کي وروسته بل حکم دی چي: "تاسو د الله رسۍ په ټینګه ونیسئ او په خپل منځ کي مه بې اتفاقه کیږئ."

دلته په خاص ډول په دې اعتبار سره د خاص پاملرني ضرورت دی چي قران مجید په دې ځای کي د "وَلَا تَفَرَّقُواْ" (په خپل منځ کي بې اتفاقي مه راولئ) لفظ استعمال کړی دی د "وَلا تَخْتَلِفُوْا" (اختلاف مه کوئ) لفظ يې نه دی استعمال کړی ځکه چي اختلاف یعني د رایي اختلاف که چیري د قران او سنتو په تعبیر او تشریح کي وي، اخلاص، للهیت او د تقوا په موجودیت کي وي، خپله لويي ښکاره کول او د نورو د ذلیل کولو په نیت نه وي او اختلاف کونکی د قران او سنتو د تشریح کولو اهلیت ولري او په داسي مسائلو کي اختلاف وي چي په هغو کي واقعاً د رایي اختلاف راتللای سي (چي هغو ته په اصطلاح کي "مجتهد فیه" مسائل ویل کیږي یعني داسي مسائل چي د هغو په باره کي په قران او سنتو کي کوم واضح حکم نه وي ورکول سوی) نو دغسي اختلاف مذموم (بد) نه دی بلکه محمود دی. د صحابه کرامو رضي الله عنهم ترمنځ هم د رایي دا ډول اختلاف موجود وو او دا اختلاف په هغو معاملاتو کي راغلی چي د هغو په اړه په قران او حدیث کي کوم واضح حکم موجود نه وو.

په بعضو حالاتو کي د رایي د اختلاف په نتیجه کي د صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه ځینو پر یوه رایه عمل وکړی او نورو پر بله رایه عمل وکړی، نبي کریم ﷺ پرې خبر سو نو ده مبارک پر هیڅ اعتراض ونه فرمایه، مثال يې دا دی

چې د احزاب د غزا څخه تر فارغېدو وروسته جبرائل امین عليه السلام د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سو او عرض یې وکړی چې: تاسو زغره ایسته کړل مونږ خو لا تر اوسه نه ده ایسته کړې تاسو به اوس پر بنو قریظه باندي حمله کوی، نو نبي کریم ﷺ سمدستي صحابه کرامو ته د بنو قریظه خوا ته د تللو حکم ورکړی او ویې وفرمایل: لاَ يُصَلِّيَنَّ أَحَدٌ الْعَصْرَ إِلاَّ فِي بَنِي قُرَيْظَةَ. (1)

ژباړه: په تاسو کي دي هیڅوک د مازیګر لمونځ نه کوي مګر په بني قریظه کي (به یې کوي).

صحابه کرام رضي الله عنهم روان سول لیکن په لاره کي د مازیګر د لمانځه وخت راغلی، اوس سوال دا وو چې که چیري د مازیګر لمونځ په بنو قریظه کي اداء کوي نو لمونځ قضاء کیږي یا یې وخت مکروه کیږي او که یې دلته اداء کړي نو په ظاهره د رسول الله ﷺ نافرماني کیږي. د صحابه کرامو رضي الله عنهم دوې رایي او نظریې سوې، د یو څو صحابه کرامو رضي الله عنهم قول دا وو چې د رسول الله ﷺ مقصد دا وو چې مونږ باید ژر بنو قریظه ته ورسیږو تر داسي اندازې چې د مازیګر لمونځ هلته ورسوو، ګویا د لمانځه قضاء کول مقصد نه دی بلکي ژر رسېدل مقصد دی لیکن څرنګه چې اوس د مازیګر په وخت کي د ننه هلته رسېدل مشکل دي نو له دې لپاره مونږ ته لمونځ هم دلته کول په کار دي.

---

۱: رواه البخاري، کتاب المغازي، باب مَرْجَعِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم مِنَ الأَحْزَابِ وَمَخْرَجِهِ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ

د نورو صحابه کرامو ﷡ رایه بیا دا وه چې ځرنګه چې د رسول الله ﷺ حکم دا وو چې د مازیګر لمونځ به په بنو قریظه کې کوو نو که قضاء وي یا اداء کول وي، په هر حال کې لمونځ هم هلته کول په کار دي. نو ځینو صحابه وو ﷡ په لاره کې لمونځ وکړی او ځیني هلته ورسېدل او لمونځ یې اداء کړی. وروسته دا واقعه د رسول الله ﷺ په حضور کې بیان کړل سوه نو ده مبارک ﷺ پر یوې ډلې لا هم ملامتیا ونه فرمایل.

ددې څخه دا خبره معلومه سوه چې که چیري د قران او سنتو په ارشاداتو کې د دوو معناګانو احتمال وي او د هغو څخه یو احتمال د علم خاوندان په اجتهاد کولو سره اختیار کړي او بعضي نور اهل علم بل احتمال اختیار کړي نو په هغوی کې هیڅ طرف ناجائز نه وي او پر دې باندي هیڅ اعتراض هم جائز نه دی، د فقهاوو د اختلاف حقیقت هم دا ډول دی.

**بېله شکه اسلام یو دی، لیکن...**

نن د فقهاوو اختلاف ته په بده سترګه کتل کیږي چې اسلام خو یو دی نو بیا دا حنفي، مالکي، شافعي او د حنبلي کېدلو څه مطلب دی؟ بېله شکه اسلام یو دی، الله تعالی یو دی، قران یو دی، قبله یوه ده، نبي ﷺ یو دی لیکن په همدغه یوه دین کې دننه الله ﷻ دا (یو ډول) نرمي (تحرک) ایښی دی چې په ځینو احکاماتو کې دننه یې مختلف امکانات او احتمالات کښېښول تر څو د هري زمانې فقها او مجتهدین د قران او سنتو پر دلائلو په غور کولو سره مسائل استنباط کړای سي او په داسي صورت کې د مجتهدینو د رایو ترمنځ اختلاف راتلل یو ظاهري خبره ده لیکن ددې اختلاف حق د هغه چا دی

چي په هغه کي د اجتهاد صلاحیت موجود وي، د قران او سنتو ماهر وي او د تر بحث لاندي مسائلو اړوند ټول احادیث دده په علم کي وي.

**اختلاف څنګه رحمت جوړیږي؟**

داسي خلک چي کله په یوه مسئله کي د رایي اختلاف کوي، د رایي دا اختلاف د امت لپاره رحمت جوړیږي، **هغه څنګه؟** ددې مثال داسي وبولی چي د یوې مسئلې اړوند د مجتهدینو دوه اقوال دي او دواړه اقوال پر دلائلو ولاړ دي لیکن قطعي دلائل د یوه فقیه سره لا هم نسته. اوس نو یو شخص د مجبوره کونکي حالاتو ښکار سو نو ددې زمانې د مفتي لپاره دا ګنجایش وي چي دی د هغه بل مجتهد پر قول فتوا ورکړي.
ددې برعکس په کوم بل هیواد کي دهغه د برعکس پر قول باندي د فتوا ورکولو سخته اړتیا رامنځته سوه نو د هغه ځای د مفتي لپاره ددې ګنجایش دی چي هغه د خپل مجتهد امام قول پریږدي دده پر مخالف قول باندي فتوا ورکړي. ګویا په یوه هیواد کي پر یوه قول فتوا ورکول سوه او په بل ملک کي ددې برعکس قول اختیار کړل سو، په همدې ډول په شریعت کي نرمي پیدا سوه او د امت لپاره رحمت جوړ سو، دې ته وفرمایل سول چي:

**اختلاف امتي رحمة.** [2]

۲: کشف الخفاء ج۱، ۶۶، رقم الحدیث: ۱۵۳

## د اختلاف تر څنګ تعظیم او احترام

لیکن دا اختلاف دی "تفرّق" نه دی، د صحابه کرامو رضي الله عنهم ترمنځ هم اختلاف راغلی دی "تفرّق" نه دی راغلی، بې اتفاقي او جلا والی نه دی راغلی، د فقهاء کرامو ترمنځ هم اختلاف وو، "تفرّق" نه وو، فرقه بندي او ډله بازي نه ده سوې، حال دا چي د خپل منځي اختلاف سربېره مجتهدین امامانو یو د بل تعظیم او احترام کاوه او اوس هم د دوی د مسلکونو (مذهبونو) پیروان یو د بل سره په ډېر تعظیم او احترام سره ویني.

زه همدا اوس د اُردن څخه راغلم، زما ټول کور به شافعي مذهبه وه، شام ته ولاړم نو هلته ځني شافعي، ځني حنبلي او ځني حنفي مذهبه وه، لیکن زموږ د هغو ټولو سره دوستۍ وې. بعضي وخت په سفر کي داسي کېدل چي د ماپښین په وخت کي به زموږ ځینو ملګرو ویل چي موږ خو د ماځیګر لمونځ هم همدا اوس اوس اداء کوو (ځکه چي د دوی په مذهب کي ددې ګنجایش دی چي د سفر په حالت کي د ماځیګر لمونځ هم د ماپښین د لمانځه وروسته د ماپښین په وخت کي اداء کړل سي)، موږ ورته ویل چي ښه دی تاسو یې اداء کړی، موږ پر خپل وخت د ماځیګر لمونځ اداء کوو لیکن مینه، تعظیم او احترام پر خپل حال پاته وو.

د امام شافعي رحمة الله علیه او د ځینو نورو فقهاوو دا مذهب دی چي کله د جماعت لمونځ کیږي نو د مقتدي لپاره هم د سورت فاتحه ویل ضروري دي، په داسي حال کي چي د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه په نزدد مقتدي لپاره په داسي صورت کي سورت فاتحه ویل جائز هم نه ده، دا یو ډېر لوی اختلاف دی، د لمانځه اړوند چي څه نور اختلافات دي هغه د افضل او غیر افضل

(اختلافات) دي، ليکن دا اختلاف د وجوب او د عدم جواز دی، او دلائل د دواړو سره په قوي درجه سره سته، د قران کريم او صحيح احاديثو څخه دي.

**امام شافعي** رحمة الله عليه **د امام محمد** رحمة الله عليه **شاګرد دی او امام محمد** رحمة الله عليه **د امام ابو حنيفه** رحمة الله عليه **شاګرد دی، امام شافعي** رحمة الله عليه **د امام ابو حنيفه** رحمة الله عليه **و مزار ته حاضر سو، هلته د لمانځه وخت راغلی، د امام شافعي** رحمة الله عليه **دا** عام عادت وو چي هغه د امامت لپاره نه مخته کېدی ليکن دلته چي کله د جماعت وخت راغلی نو خپله د امامت لپاره وړاندي سو، لمونځ يې ورکړی او په لمانځه کي يې رفع اليدين ونه کړی (د رفع اليدين اختلاف د افضل او غير افضل دی، د امام شافعي رحمة الله عليه په آند رفع اليدين کول افضل دی او د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په آند نه کول افضل دي).

کله چي د لمانځه څخه فارغه سو نو يوه شاګرد څني وپوښتل چي دا څه خبره ده؟ ستاسو عادت خو د امامت کولو نه وو دلته تاسو خپله مخته سولاست، او بيا مو رفع اليدين هم ونه کړی. ويې فرمايل چي رفع اليدين مي په دې خاطر ونه کړی چي دا زما په نزد افضل خو دی واجب خو نه دی، ما ته دلته په لمانځه کولو کي شرم راغلی چي زه د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د رايي خلاف عمل وکړم. او د امام لپاره ځکه مخته وړاندي سوم چي که ما د چا تر شا لمونځ کوی نو ما به سورت فاتحه ويلای ځکه چي زما د مسلک مطابق بېله دې څخه لمونځ نه کيږي مګر دلته د امام صاحب د مسلک پر خلاف کار کولو ماته شرم ودرېدی نو په دې خاطر زه (اوس په لمانځه کي) امام سوم ځکه چي امام ته د دواړو مذهبونو مطابق سورت فاتحه ويل ضروري ده.

دا وو ددې خلکو یو تر بله احترام او تعظیم، کوم خلک چي دا اختلافات د ملامتیا ذریعه جوړوي، هغوی د انتهایي درجې بې دینۍ ښخه کار اخلي او یا د انتهایي درجې ناخبرۍ پر بنیاد دا خبري کوي! کوم حضرات چي د دغو اختلافاتو حقیقت پېژني، هغوی ته معلوم دي چي دا اختلافات محضي د الله ﷻ لپاره وه، په دې کي د نفس هیڅ مداخله نه وه، بلکي کوم اختلافات چي د فقهاء کرامو ترمنځ وروسته سوي دي، دا د صحابه کرامو رضي الله عنهم ترمنځ هم موجود وه، دارنګه چي بعضي صحابه کرامو رضي الله عنهم "قرائت فاتحه خلف الامام" ویل ، لیکن بعضو نه ویل، بعضو رفع الیدین کوی خو بعضو نه کوی، بعضو آمین په لوړ آواز وایه خو بعضو نه وایه. د لمانځه د قصر په باره کي د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مسلک د حضرت عثماني غني رضي الله عنه د مسلک ښخه مختلف وو، دا ټولي خبري وې لیکن پر دې سربېره قران مجید د دوی په باره کي فرمایي:

أَشِدَّآءُ عَلَى ٱلۡكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيۡنَهُمۡۖ . (سورة الفتح، ایت۲۹)

ژباړه: (صحابه کرام رضي الله عنهم) د کفارو په مقابله کي سخت او په خپل منځ کي نرم زړه دي.

قران مجید د امتیاز داطلایي کرښه ټولو صحابه کرامو ته ورکړې ده چي دوی په خپل منځ کي رحیم او کریم دي، معلومه سوه چي د دوی دا اختلاف خالص پر للهیت باندي ولاړ وو، پر نفس یا ضد باندي نه وو مبني.

## د جمل او صفین د جګړې اړوند مشکل او جواب

دلته یو څوک دا سوال کولای سي چي د جمل او صفین د جګړې کوم واقعات چي رامنځ ته سول، هلته یو د بل خلاف جګړې ته لاس واچول سوو ،دا څه شي وو؟ ایا دا تفرق وو او که اختلاف؟ جائز وو او که ناجائز؟ پر نفسانیت بنا وو او که پر للهیت بنا وو؟

ددې اصولي جواب خو په دې ایت کي ورکول سوی دی چي همدا اوس بیان کړل سوو چي د هغه څخه معلومیږي چي دا حضرات " رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ " وه، معلومه سوه چي د هغوی هیڅ جګړه د نفسانیت لپاره نه وه، حال دا چي ددې نور ډېر دلائل هم سته چي تاریخ هغه محفوظ کړي دي.

۱:- د حضرت علي رضي الله عنه څخه د صفین د جګړې پر وخت دا وپوښتل سول چي د سبا په جنګ کي که موږ د خپل مخالف لښکر صحابه قتل کړو نو د هغو به څه حکم وي؟ ویې فرمایل چي هغوی به شهیدان وي، بیا یې څني وپوښتل: که زموږ د لښکر کسان قتل کړي نو د هغو به څه حکم وي؟ ویې وفرمایل چي هغوی به هم شهیدان وي. همدا سوال د حضرت معاویه رضي الله عنه څخه هم وسو، هغه هم هغه جواب ورکړی کوم چي حضرت علي رضي الله عنه ورکړی وو[3]. ځکه چي دواړي ډلي د الله جل جلاله لپاره جنګېدلې نه د حکومت لپاره.

۳: مقدمه ابن خلدون، فصل ۳۰، ص۳۸۵

۲:- دوهم دلیل چي تاریخ ساتلی دی دا دی چي: د صفین د جنګ په زمانه کي دا خبر راورسېدی چي د روم عیسوی پاچا "قیصر" غواړي چي پر شام حمله وکړي نو حضرت معاویه رضي الله عنه هغه ته داسي خط ولیکی[4]:

" ستا د کومي ارادې خبر چي موږ ته رسېدلی دی، که تا پر دې باندي عمل وکړی نو زه د خپل ملګري (حضرت علي رضي الله عنه) سره صلح کوم او د هغه په تر ټولو مخکي صف کي درېږم او ستا طرف ته درځم او د بدبویه قسطنطنې (استنبول) څخه توره ایره جوړوم او تا د پاچاهۍ څخه د زردکي په ډول راکاږم او داسي بزګر در څخه جوړوم چي خنزیران به پیایي (څروي)."

دا د صحابه کرامو رضي الله عنهم شان وو، رښتیا خبره دا ده چي موږ صحابه کرام رضي الله عنهم د نن سبا پر سیاست پوهانو قیاسوو، ترمنځ یې د مځکي او آسمان فرق دی، موږ وګوره او صحابه کرام رضي الله عنهم وګوره! قران مجید او احادیث د هغو د فضائلو څخه ډک دي.

## یو مهم اصول

یو مهم اصول د یادولو وړ دی چي زموږ والد ماجد (حضرت علامه مفتي محمد شفیع) رحمة الله علیه په خپل کتاب "**مقام صحابه** رضي الله عنهم" کي لیکلی دی، چي د هغه حاصل دا دی چي کله تاسو د تاریخ یو کتاب رااخلی نو تاسو ته به د بعضو صحابه کرامو رضي الله عنهم مثلاً د حضرت معاویه رضي الله عنه په اړه ډول ډول خبري په لاس درسي، نو حیران به سی چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابي حضرت معاویه

۴: تاج العروس: ج۷، ص۲۰۸، همدارنګه وګورئ: الغریب للخطابي، ج۲، ص۵۳۵، الفائق: ج۱، ۴۶، لسان العرب، ج۱، ص۱۱۶ او ص ۱۵۴

ﷺ داسي کوي؟! کله یيا د حضرت عمرو بن العاص ﷺ په اړه همداسي خبري مخي ته درځي او کله یيا د بل صحابي په اړه وي، لیکن خبره دا ده چي د تاریخي روایاتو سند په دومره اندازه قوي او مضبوط نه وي لکه څرنګه چي د احادیثو دا مضبوط وي او نه هم تاریخ پوهان د هغو ټاکل سوو شرائطو پابندي کوي د کومو شرائطو پابندي چي محدثین کوي. په تاریخي روایاتو کي کمزوره بلکه د درواغجنو راویانو روایتونه هم راځي، په داسي حال کي چي په احادیثو کي دننه په پلټنه سره اوبه او شیدې جلا سوي دي، او د صحابه کرامو ﷺ فضائل، د هغو بزرګي، د هغو پاکي او د هغو انصاف په قران کریم او متواترو احادیثو کي بیان کړل سوي دي، همدا وجه ده چي د صحابه کرامو ﷺ د تقدس (پاکۍ) مسئله د عقیدې مسئله ده او عقیده یا خود قران کریم څخه ثابتیږي او یا د متواترو احادیثو څخه ثابتیږي، د تاریخي روایاتو څخه خو چیري ثابتیږي بلکه د احادیثو د یو ډول "خبر واحد" څخه لا هم نه ثابتیږي. نو له همدې امله د صحابه کرامو ﷺ د عدالت داغونکي ځومره روایات چي په تاریخ کي وي هغه ټوله په کثافت دانۍ کي د غورځولو وړ دي.

## د رايي د اختلاف څخه چاره نسته

زموږ والد ماجد رحمة الله عليه عجبه خبره فرمايل، هغه دا چي په کوم ځای کي کومه قطعي خبره نه کيږي بلکي مختلف ډوله احتمالات وي او ډېر کسان پر هغه باندي غور او فکر کوي نو هلته د رايي د اختلاف څخه هيڅ چاره نسته. د رايي د اختلاف د نه کېدو صرف دوه صورتونه کېدلای سي: يا به ټول بې علمه وي چي يوه يو خبره وکړي نو ټول به يې سمدستي په ړندو سترګو ورسره مني او يا به ټوله منافقان وي چي رايه خو بل ډول وي مګر د ړانده تقليد په خاطر د خپل زړه خبره پټه کړي. ليکن که منافق هم نه وي او بې علمه هم نه وي بلکي عالمان او ديندار وي نو بيا به د رايي اختلاف خامخا راځي او دا (اختلاف) يوازي تر ديني مسائلو پوري خاص نه دی بلکي د هر علم او فن همدا حال دی. په ډاکټرانو کي اختلاف وي، په انجينرانو کي اختلاف وي، د قانون په تشريح کي د سترو محکمو ترمنځ اختلاف راځي، داسي اختلاف ته هيچيري بد نه ويل کيږي. همدارنګه په قران او سنتو کي د صحابه کرامو رضي الله عنهم ترمنځ اختلاف راغلی او د مجتهدينو امامانو ترمنځ هم راغلی ليکن دا اختلاف دی"تفرق" نه دی، ډله بازي نه ده، اختلاف جائز دی، تفرق يعني سره جلا کېدل (بې اتفاقي او دښمني) کول جائز نه دي.

## درې شیان

پر تفرق باندي د خبرو کولو څخه مخکي دا خبره په ذهن کي ولری چي د اختلاف اړوند چي کومي خبري وسوې، د هغه حاصل او خلاصه درې شیان دي:

یو دا چي کوم اختلاف چي د قران او سنتو پر بنیاد باندي د اخلاص او د الله جَلَّ جَلَالُہٗ لپاره وي او په اختلاف کونکي کي دا اهلیت موجود وي کوم چي د هغه لپاره ضروري دی نو دا اختلاف منع نه دی بلکي د امت لپاره رحمت دی.

دوهم دا چي دا اختلاف په داسي مسائلو کي وي چي قران او سنتو د هغه په اړه کومه قاطع فیصله نه وي کړې، داسي مسائل چي په هغه کي د اجتهاد ګنجایش وي یعني تر یوه د ډیرو رایو احتمال پکښې وي، په هغو کي چي هره ډله کومه رایه د دلائلو پر بنیاد قایمه کړي نو هغه ناجائزه او ناخوښه نه وي.

نو څرنګه چي هغه ناجائزه نه ده نو د چا لپاره بیا دا جائز نه ده چي بل یو ددې په خاطر وترټي. مثلاً یو شخص رفع الیدین کوي، بل یې نه کوي، کونکي ته یې دا جائز نه ده چي نه کونکی وترټي او نه کونکي ته هم دا جائز نه ده چي هغه کونکی وترټي ځکه چي دلته هیڅ رایه منکر نه ده او پر غیرمنکر باندي اعتراض کول خپله منکر دی.

دریمه خبره دا چي مثلاً موږ وایو چي موږ حنفي یو او فلانکی شافعي دی یامالکي دی او یا حنبلي دی نو ددې دا هیڅکله مطلب نه دی چي د امام ابوحنیفه رحمۃ اللہ علیہ قول یقیناً یقیناً صحیح دی او د امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ قول او یا

د بل امام مثلاً امام احمد بن حنبل رحمه الله قول یا د امام مالک رحمه الله قول چي د دې په مقابل کي دی هغه نو یقیناً غلط دی، بلکي د دې مطلب دا وي چي زموږ قول " **مظنون الصواب**" او "**متحمل الخطاء**" دی، په داسي حال کي چي هغه بل قول "**مظنون الخطاء**" او "**متحمل الصواب**" دی. یعني غالب ګمان دا دی چي د امام ابو حنیفه رحمه الله قول صحیح دی که څه هم د دې قول د غلطېدو احتمال هم شته او د نورو امامانو په اړه زموږ نظریه دا ده چي زموږ غالب ګمان دا دی چي هغه خطاء دی لیکن دا احتمال یې هم شته چي هغه دي صحیح وي.

## د تفرق او ډله بازۍ د جواز هیڅ صورت نشته

دوهم شی "تفرق" دی یعني په مسلمانانو کي جلاوالی (بې اتفاقي) راوستل، دا دومره لویه ګناه ده چي شریعت په هیڅ حالت کي د دې اجازت نه دی ورکړی. د خنزیر غوښه چي څومره حرامه ده، د مسلمانانو سره جلاکول (په منځ کي دښمني راوستل) تر دې ډېر حرام کار دی! د خالصو انګورو شراب چیښل چي څومره لویه ګناه ده، په مسلمانانو کي جلاوالی راوستل تر دې لویه ګناه ده. تاسو وګورئ چي په بعضي انتهایي مجبورونکي حالاتو کي شریعت تر یوه حده د خنزیر د غوښو خوړلو او د شرابو چیښلو (مثلاً یو شخص د ډېري سختي لوږي یا تندي په خاطر هلاک کېږي او کوم حلال شی میسر نه وي نو دومره د خنزیر غوښي خوړل یا شراب چیښل چي په هغه سره ځان بچ کړي، د دې اجازت یې کړی دی) لیکن په مسلمانانو کي یې د جلاوالي (دښمنۍ) اجازت په هیڅ حالت کي نه دی ورکړی. څومره چي موږ په قران او سنتو کي غور کړی دی او څومره چي زموږ بزرګانو موږ ته

لاربنو نه کړې ده، موږ ته هم دا په نظر راغلې ده چې د "تفرق" او فرقه یا ډلي جوړولو هیڅ صورت جائز نه دی.

## نهي عن المنکر څه وخت ضروري دی؟

د نن زمانې یو لوی مصیبت همدا دی چې یو تر بله د رایې اختلاف د خپل منځي جنګ او جګړې او د بې اتفاقۍ او جلاکېدو ذریعه ګرځول سوې ده. د شیطان یوه لویه قاعده دا ده چې هغه عالم ته د عالم په شکل کي راځي، صوفي ته صوفي جوړ سي او ورته راځي او فقیه ته فقیه جوړ سي راځي او هغه داسې پوهوي چې ګوره فلانکي شخص دا غلط کار وکړی او د حق خبره (هغه) ته کول فرض عین ده او په حدیث شریف کي راغلي دي:

مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ وَذَلِكَ أَضْعَفُ الإِيمَانِ.[5]

ژباړه: په تاسو کي چې کوم شخص هم د کوم بد کار کړنه ووینې نو هغه دي یې په لاس سره منع کړي، که یې ددې طاقت نه وي نو په ژبه سره دي یې منع کړي، او که یې ددې هم طاقت نه وو نو په زړه سره دي یې بد وګڼي او دا دایمان تر ټولو کمزورې درجه ده.

لیکن شیطان دا خبره ځني هیروي چې هغه شخص چې کوم کار منع کول غواړي هغه خو بد کار نه دی! ځکه چې ددې تعلق د مجتهد فیه مسائلو سره دی او د شرعي دلیل پر بنیاد دی او که بد کار هم وي او پر دې باندي د اعتراض کولو (یا بندلو) باندي د بلې لویې فتنې پیدا کېدلو بېره وي نو په

5: رواه مسلم، کتاب الایمان، باب کون النهي عن المنکر من الایمان.....الخ، ج۱، ص۵۰

داسي صورت کي "**نهي عن المنکر**" لا هم جائز نه دی، بلکي سکوت او چوپډل واجب دي! په حدیث شریف کي چي راغلي دي چي: "مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ...الخ" دلته د استطاعت (طاقت لرلو) څخه صرف حسي استطاعت او حسي قدرت مراد نه دی بلکي په قدرت کي دا خبره هم داخل ده چي که د دې منکر کار د لیري کولو څخه د کوم بل منکر کار د پیدا کېدلو بېره وي یا په مسلمانانو کي د بې اتفاقۍ (دښمنۍ) بېره وي نو داسي ثابتیږي چي قدرت حاصل نه دی او دلته سکوت او چپوالی واجبیږي.

## د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه واقعه

د دې مثال په صحیح مسلم کي د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه دا واقعه ده چي دده په زمانه کي مروان بن الحکم د مدینې منورې والي وو، ده (مروان) دا طریقه اختیار کړه چي د اختر په لمانځه کي یې خطبه د لمانځه څخه مخکي ورکول غوښتل، حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه او هغه عیدګاه ته یو ځای راغلي وه، حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه هغه د مصلی طرف ته ورمخ ته کړی تر څو د سنتو مطابق د اختر لمونځ مخته سي او خطبه وروسته سي، لیکن هغه منبر ته وختی نو یو شخص ودرېدی، هغه هیڅ سختي خبري ونه کړي لیکن صرف دا یوه جمله یې وویل:

الصَّلاَةُ قَبْلَ الْخُطْبَةِ

لمونځ تر خطبې مخکي کیږي.

لیکن مروان وویل چې هغه طریقه ترک (پاته) سوې ده، حضرت ابوسعید خدري ﷜ ولاړ سو او ویې فرمایل:

**أَمَّا هَذَا فَقَدْ قَضَى مَا عَلَيْهِ.** (رواه مسلم، کتاب الایمان)

(دا شخص کوم چې دا مسئله یې بیان کړه) هغه دا فریضه اداء کړل چې دده پر ذمه وه.

اوس دلته د غور کولو خبره همدا ده چې دلته حضرت ابوسعید خدري ﷛ او هغه شخص لره دا قدرت حاصل وو چې د وی مروان ونیسي او د منبر څخه یې لاندي راکښته کړي لیکن شرعي قدرت یې نه درلودی! ځکه که یې داسي کړي وای نو جنګ او جګړه رامنځ ته کېده، ځني خلګ د حضرت ابوسعید خدري ﷛ پر طرف درېدل او ځني د مروان بن الحکم پر طرف کېدل چې ددې په نتیجه کي د مسلمانانو په منځ کي بې اتفاقي او درز پیدا کېدی. نو د حضرت ابوسعید خدري ﷛ ددې قول څخه دا معلومه سوه چې دلته یوائې په خبره سره د هغه پوهه کول کافي وه، د لاس د استعمالولو اجازت نه وو، نو معلومه سوه چې د منکر کار منع کول هم تر دې شرط پوري مشروط دي چې په دې سره د مسلمانانو ترمنځ بې اتفاقي، جلاوالی او درز رانسي.

## د اختر په لمانځه کي سجده سهوه ولي معاف ده؟

ددې یو بل مثال دا دی چي د شریعت مسئله ده چي که په لمانځه کي واجب پاته سي نو سجده سهوه واجبیږي لیکن فقهاوو لیکلي دي چي که د اختر په لمانځه کي واجب پاته سي نو سجده سهوه دي نه کول کیږي، وجه یې دا بولي چي د اختر په لمانځه کي مجمع ډېره زیاته وي او د اختر د لمانځه طریقه د عامو لمونځو څخه یو څه مختلفه هم وي، که په دې کي سجده سهوه وکړل سي نو ډېر زیات خلګ چي په پوره ډول د مسائلو څخه خبر نه وي نو هغوید وارخطایی ښکار کیږي، څوک به سجده کوي، څوک به سلام ګرځوي، څوک به دریږي، بیا به ترمنځ جنګ جوړیږي، ځني خلګ به امام ته ګوته نیسي چي تا زموږ لمونځ را خراب کړی نو شریعت امت د جګړې کولو څخه د ساتني په خاطر دا حکم وکړی چي دلته سجده سهوه مه کوئ.

## حطیم یې ولي په بیت الله کي نه کړی شامل؟

ددې یو بل ډېر واضح مثال دا دی چي بیت الله شریفه چي د ټول امت مسلمه تر قیامته پوري قبله ده، تاسو ته معلومه ده چي ددې سره نژدې یو څه حصه د "حطیم" په نامه یادیږي، دا په اصل کي د بیت الله حصه وه لیکن کله چي قریشو دا تعمیر کړل نو د دوی سره د پیسو کمی وو نو ځکه هغو یو څه حصه پرېښول، په داسي حال کي چي د حضرت ابراهیم ﷺ په واسطه ایښودل سوي بنیادونه د حطیم تر حصې پوري دي، حضرت رسول الله ﷺ یو ځل حضرت عایشې صدقې رضي الله عنها ته وفرمایل: که ستاسو قوم (یعني مسلمانانو) **حدیث العهد باالاسلام** نه وای (یعني که چیري دوی تازه اسلام نه وای قبول کړی) نو ما دا بیت الله د حضرت ابراهیم ﷺ د بنیادونو مطابق

جوړول (لیکن څنګه چي خلګ نوي مسلمانان سوي دي نو ځکه خطره ده چي که زه دا یوه حصه ونړوم او د حطیم حصه ورسره شامله کړم نو په نوي مسلمانانو کي به ځني کسان د اختلاف ښکار سي چي په دې سره په مسلمانانو کي د درزا او بې اتفاقۍ بېره سته) (6).

وګورئ! رسول الله ﷺ مسلمانان د بې اتفاقۍ او جنګ څخه د ساتلو لپاره بیت الله چي تر قیامته د مسلمانانو قبله ده ناکمله پرېښول او تر اوسه لا همداسي نامکمله ده. په داسي حال کي چي دا د ټولي نړۍ د بیلونونو انسانانو قبله ده او د دې رتبه تر مسجد ډېره زیاته ده لیکن د مسلمانانو د بې اتفاقۍ، جنګ او جدل څخه د ساتني په خاطر یې دا همداسي نامکمله پرېښول.

### د مسلمانانو د بربادۍ دوه اسباب

حضرت شیخ الهند رحمة الله علیه چي کله د انګرېزانو د مالټا د بندیخانې سختۍ او زحمتونه برداشت کړل او ازاد کړل سو نو بیرته یې دیوبند ته تشریف راوړی نو په یوه مجلس کي چي په هغه کي صرف علماء کرام وه داسي وفرمایل: موږ د مالټا د دې ټول قیام په وخت کي دوه سبقه زده کړل، په مجلس کي ډېر ستر ستر مشهوره علماء موجود وه، هغوی ټول ژر متوجه سول چي د خپل وخت امام چي دوې خبري زده کړي دي او راغلی دی، هغه به څومره مهمي خبري وي. نو ویې فرمایل: موږ دوه شیانو تباه کړي یو: یو د قران کریم څخه لیري والي، او بل د مسلمانانو د خپل منځي اختلاف. ما دا سبق

---

۶: بخاري، باب مَنْ تَرَكَ بَعْضَ الاِخْتِيَارِ مَخَافَةَ أَنْ يَقْصُرَ فَهْمُ بَعْضِ النَّاسِ....الخ، رقم الحديث: ۱۲۶، مسلم، رقم الحديث: ۱۳۳۳

راوړی دی چي د ژوند څومره لحظې چي پاته دي هغه به د قران مجید په خدمت کي او د مسلمانانو ترمنځ د اختلاف په ختمولو کي تیروو.
هره بدي تر یوه وخته او تر یوه حده تحمل کېدلای سي لیکن د مسلمانانو اختلاف او بېل والی په هیڅ حالت کي نه سي زغمل کېدلای.

## په دوو مغرورو کسانو کي هیڅکله اتفاق نه سي راتلای

زموږ والد ماجد رحمة الله علیه به فرمایل چي د دوو مغرورو کسانو ترمنځ هیڅکله اتفاق نه سي راتللای، د اتحاد لپاره دا اړینه ده چي یو نفر د خپلو برېتونو د کښته کولو لپاره تیار سي، که دواړه خپل برېتونه لوړ ساتي نو هیڅکله به اتفاق نه وي.

## مه خپل مسلک پرېږدئ او مه د بل په مسلک کار لرئ

څه کول په کار دي؟ د حکیم الامت حضرت تهانوي رحمة الله علیه ملفوظ چي ډېر لنډ دی د یادلو وړ دی هغه دا چي: "**مه خپل مسلک پرېږدئ او مه د بل په مسلک کار لرئ**". څوک چي د هري مسئلې پیروي کوي هغه دي په خپل مسلک عمل وکړي لیکن په نورو دي غرض نه لري، دا هم هغه خبره ده چي په مجتهد فیه مسائلو کي هیڅ جهت بد نه وي او کله چي بد نه دی نو پر دې اعتراض کول هم جائز نه دی.(7)

۷: د تقلید یا د مذهب د اثبات په اړه د نړۍ د مشهور او منلي عالم شیخ الاسلام علامه مفتي محمد تقي عثماني حفظه الله کتاب "د تقلید شرعي حیثیت" او همدارنګه د نړۍ د مشهوري اسلامي مدرسي دیوبند د محقق عالم علامه سرفراز خان صفدر رحمة الله علیه کتاب "الکلام المفید في اثبات التقلید" یقیناً پر دې موضوع بهترېني علمي منابع دي.

## خلاصه

نو زما د خبرو خلاصه دا راووتل چي اختلاف (په خپل حد کي) جائز دی او د اختلاف کونکو د نظرياتو احترام هم لازمي دی ليکن افتراق (بېل والی، بې اتفاقی، جنګ او شخړه) په هيڅ حال کي هم نه دی جائز، موږ د همدې افتراق له سببه تباه کېدونکي يو. د علامه اقبال ځني شعرونه ددې معاملې ډېره ښه ترجماني کوي، هغوی وويل چي:

منفعت ایک ہے اس قوم کی نقصان بھی ایک
ایک ہے سب کا نبی، دین بھی ایمان بھی ایک
حرم پاک بھی ، اللہ بھی ، قران بھی ایک
کیا بڑی بات تھی ہوتی جو مسلمان بھی ایک
فرقہ بندی ہے کہے، اور کہے ذاتیے ہیں
کیا زمانے میے پنپنے کی یہی باتیں ہیں

نن کفر زموږ د ختمولو لپاره سره يو سوي دي او موږ په خپل منځ کي يو د بل سره جنګونه او شخړي کوو! ضرورت ددې خبري دی چي هر يو په خپل مسلک عمل وکړي او د ورونو په ډول يو ځای سره واوسيږي او سره يو سي د کفر مقابله وکړي، الله تعالی دي موږ ته ددې توفيق رانصيب کړي، آمين.

وَآخِرُ دَعْوَانا أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِين

د تعليم الاسلام راډيو ويب پاڼې له خوا:

www.taleemulislam-radio.com

